گروهېدل (grohedә́l) مص. ل ١) متوجه کېدل؛ ٢) وېرېدل؛ ٣) عقيدتمن کېدل.

گروهيز (grohíz) نر.م. عقيدوي، اعتقادي، عقيده يي، ايماني.

گروې (gráwe) ښځ.ج. گرۍ، د اوږې او څټ ترمنځ هډوکی.

گروی (garwáy) نر.م. و گ. زګېروی.

گروېږل (grawezә́l) مص. مت. پوښتنه کول، لټون کول، غوښتنه کول.

گروېږن (grawezә́n) نب. د ګوډي او ژي لپاره د حلال شوي مال د پوستکي ايستلو طريقه.

گروېږونی (grawezū́nay) نر. م. پلټونکی.

گرويليک (grawilík) نر.م. ګانه ليک، ګروي خط، ګانه خط.

گره (gará) ښځ.م. په خاوروکې دساتل شويو ګنوډېرې.

گرهار (garahā́r) نر.م. ګر، دجامو شلېدلو آواز.

گره بره (garabára) ښځ.م. نانډوله، سرسري، لنډ تنګ، سطحي.

گرهچ (garhác) نر.م. ډوغل، کنده، ګرهوڅ.

گرهو (gârhū́) ص. نب. زړه ماتوونکې خبرې.

گرۍ (garáy) نر.م ١) درمندګی؛ ٢) ص.نر.م. دارو، هغه څوک چې بې ډوله او راوتلي غاښونه ولري.

گري (garí) نر.ج. د شولو هغه دانې چې په بوټي کې نيمې پخې شوې وي.

گرۍ (gray) ښځ. م. د دروازې چوڼ يا لخک.

گريب (grib) نر.م. د اوبو کوب يا بوکان، کويب.

گريټ (griṭ) نر.م. هغه لويه ډوډۍ چې ګوره هم په کې اچول شوې وي.

گرېټۍ (greṭáy) ښځ.م. د ګېلو مانو خبرې.

گرېدل (garedә́l) مص. ل. ١) کږه کېدل، خارښتېدل ٢) رژېدل، ګونجې کېدل؛ ٣) پوستکی لېرې کېدل؛ ٤) مج. حاصلېدل، پوشي بودېدل.

گريس (gris) نر.م. يو ډول سرېښناکه غوړه ماده ده.

گرېښک (grešk) نر.م. غټه ګوته، کټه ګوته.

گرېګرکی (gregar̥kay) نر.م. ګرېګرۍ، ږلۍ، له باران سره د واورې نرۍ نرۍ دانې ورېدنه.

گرېله (grelá) ښځ.م. توشکه، تولايي، نالۍ.

گرېڼ (gren) نر.م. تخم، غله، دانه، د يوې نيمې رتۍ وزن.

گرين[1] (grin) نر.م. سينه.

گرين[2] (garín) نر.م. مزی يا تار چې دوه يا درې واره غبتل شوی يا تاو شوی وي.

گرينډۍ (grinḍáy) ښځ.م.ج. کجاوه، له لښتو نه جوړه شوې لويه کجاوه يا کارۍ.

گرېو (grew) نر.م. ګروه، ګانه، رهن.

گرېوان (grewā́n) نر.م. ګرېوه، ګېږ، د کميس هغه برخه چې په سينه پرته وي.

گريولی (gríwlay) نر.م. خراشکی، بلغم.

گريوه (griwá) ښځ. م. د تنۍ سورۍ.

گرېوه (garewá) ښځ.م. وروکی غر، غرګوټی.

گرېيل (gareyә́l) مص. مت. و ګ. ګرول.

گړ (gaṛ) نر.م. ١) کلا، قلا؛ ٢) دلاحقې په توګه د ظرفيت مانا ورکوي، د اوسېدو ځای؛ ٣) د ښځو د ويښتانو زرورق؛ ٤) لفظ، خبره، وينا، سپڼ، مورفيم، دژبې ترټولو کوچنی مانيز يوون (واحد).

گړاواز (gaṛāwā́z) نر.م. مورفو فونيم، صوتي اريکه، صوتي رابطه، هغه اواز، چې د يوه ګړ بېلا بېلو څېلونو (بلګړونو) په لړ کې راځي

گړاواز پوهنه (gaṛāwā́zpohána) ښځ.م. د ژبپوهنې هغه څانګه چې ګړاوازونه څېړي.

گړاچی (gṛā́čáy) ص. نر.م. و ګ. ګړچند.

ګړاکو (grākū) نر.م. ۱) د تماکو او زړي ګوړي مرکب چې په چلم کې څکل کېږي؛ ۲) همدغه چلم.

ګړب (grab) نر.م ۱) ګړپ، تېزې او تونږي خبرې؛ ۲) د دوو شیانو سره خپلو کې د لګېدو آواز؛ ۳) د مور کانو نیولو پنجره؛ ٤) غټه سوره.

ګړبا (grabā) ښځ.م. ۱) تونږي خبرې؛ ۲) د دروازې یا نورو شیانو سره د لګېدو آواز.

ګړباده (garbādá) ښځ.م. بړبوکی، د پېریانو ډولی.

ګړباوو (grabāwū) ص. نب. کرتن، ډېرې خبرې کوونکی.

ګړباوه (grabāwá) ښځ.م. ۱) د اوبو د وتو ځای؛ ۲) کانېزه څمکه.

ګړبړ (garbar) نر.م ۱) د ګېډې د قرېدو آواز، قرقر؛ ۲) مج. بې‌نظمي، ګډوډي؛ ۳) ګړبډنه؛ ٤) په اراده یا بیان کې توپیر راتلنه؛ ٥) وارخطایي.

ګړب ګروب (grabgrūb) نر.م. ۱) خبرې اترې؛ ۲) د دروازې د خلاصېدو او پورې کېدو آواز.

ګړبن (grabán) ص. نر.م. ګړبند، بې ځایه او چټي خبرې کوونکی، ګړبو، سرماغزن.

ګړبند[1] (garaband) ص. نر.م. ګړبن، قرتو، ترتو.

ګړبند[2] (graband) ص. نر.م. ۱) زوړ، کم‌زوری، ضعیف، بوډا؛ ۲) ډېر استعمال شوی.

ګړبنده (grabanáda) ښځ.م. ۱) په غره کې لوی طبیعي غار؛ ۲) د غټو کانو او تیږو ځای.

ګړبنی (grabnáy) ښځ.م. کانېزه څمکه.

ګړبو (grabū) ص. نب. و.ګ. ګړباوو.

ګړبوزه (garbūza) نر.م. ړچېدنه، ړچ، ګرګوزه.

ګړبوزی (garbūzáy) نر.م. ۱) غزی؛ ۲) بالښت؛ ۳) ګورت، د دوګوتو ترمنځ فاصله.

ګړبول (grahawál) مص. مت. ۱) له دروازې نه آواز ویستل؛ ۲) له یو چا نه چټي خبرې ویستل؛ ۳) په غوسه کول؛ ٤) زړول، ډېر استعمالول.

ګړبهار (grabahār) ص. نر.م. ګړبار، د دوو شیانو سره خپلو کې د لګېدلو آواز.

ګړبېدل (grabedál) مص. ل. ۱) له یو شي نه آواز ختل؛ ۲) ډېر استعمالېدل؛ ۳) چتیات ویل ٤) غوسه کېدل؛ ٥) څړیکې وهل.

ګړبېزن (garbezán) ص. نر.م. ګړبېزن، هغه سړی چې پوزه یې تل له ګند نه ډکه وي، خیرن، خچن.

ګړپوهنیز (garpohaníz) نر.م. مورفولوجیکي، ګړپوهیز.

ګړپوهه (garpóha) ښځ.م. ګړپوهنه، مورفیم پوهنه، واژه شناسي.

ګړچ (grač) نر.م. ۱) تېزې او تونږي خبرې؛ ۲) په لوښي کې د ننه د یو شي د ړچولو آواز.

ګړچاوو (gračāwū) ص. نر.م. ۱) هغه سړی چې زوم دخسر کور ته بیایي؛ ۲) تونږي خبرې کوونکی.

ګړچند (gračand) نر.م. ړچن، ړق، هغه شی چې د ګړچ ګړچ آواز کوي.

ګړچول (gračawál) مص. مت. د خوځولو له امله د یو شي نه آواز پیدا کول.

ګړچه (gráča) ښځ.م. د خولې بحث.

ګړچهار (gračahār) نر.م. د ګړچ ګړچ آواز.

ګړچېدل (gračedál) مص. ل. د خوځېدو په وجه له دروازې یا بل شي نه آواز پیدا کېدل.

ګړد[1] (gard) نر.م. دوره، ګرد.

ګړد[2] (gard) ص. نر.م. ګردی سړی.

ګړداګړد (gardāgárd) ص. نر.م. ګرداګرد، شا وخوا، چپ چاپېر.

ګړدان (gardān) نر.م. ۱) د غره لمن؛ ۲) د بتیارانو لوټکی؛ ۳) و.ګ. ګردان.

**ګړدانول** (gaṛdānawə́l) مص. مت. وګ. ګردانول

**ګړداو** (gaṛdáw) نر.م. ۱) لوی سېلاب؛ ۲) اوبګرځی، ګرداو.

**ګړدګاډی** (gaṛdgā́ḍay) نر.م. هر هغه غونډی شی چې غړولی یا تاوولی شي.

**ګړدود** (gaṛdód) نر.م. ویناډود، لهجه، ډیالیکټ.

**ګړدوداطلس** (gaṛdōdatlás) نر.م. ګړدودي اطلس، لهجوي اطلس.

**ګړدودپوهنه** (gaṛdodpohána) ښځ.م. ګړدود پوهه، د ګړدود اړوند علم، لهجه پېژندنه.

**ګړدودي** (gaṛdodí) ښځ.م. د ګړدود اړوند، د لهجې اړوند.

**ګړدودي ځمکپوهنه** (gaṛdodiǰmakpohána) ښځ.م. لهجوي جغرافیه، لهجوي جغرافیا.

**ګړدوکی** (gaṛdū́kay) نر.م. د خیمې اړم، ګرده تخته چې په خیمه کې کارېږي.

**ګړدی** (gaṛdə́y) ص. ښځ.م. ۱) غونډه، حلقه، ګیر چاپېره، تاوراتاو؛ ۲) ښځ.م. خرخې چکر.

**ګړدی** (gaṛdáy) نر.م. ۱) ټکی، چرمکی؛ ۲) ص. مندری، چیتکی، لنډی.

**ګړز** (gṛaz) نر.م. تېز او دروند آواز.

**ګړزا** (gṛazā́) ښځ.م. ګړزهار، ګړزار، ګړزګړوز، د ډزو پرله پسې آواز.

**ګړزول** (gṛəzawə́l) مص. مت. ۱) له یو شي نه د ګړز ګړز آواز ويستل؛ ۲) ډزول، ډزې کول.

**ګړزېدل** (gṛazedə́l) مص. ل. ګړزګړوز کېدل، په پرله پسې توګه ډزې کېدل.

**ګړشپه** (gaṛšū́pa) ښځ.م. وګ. ګړشوپ.

**ګړګاډېر** (gaṛgāḍér) ص. نر.م. ګړګاډېره، هغه څه چې بل شی په کې ګډ شوی وي، ګاډېره.

**ګړګړ** (gaṛgáṛ) نر.م. د ګېډې یا د اوبو آواز.

**ګړګړو** (gaṛgurū́) نر.م. تورتورو، ستونی، حلقوم، غړې، غړوی، د مرۍ سوری، حلق.

**ګړګړی** (gaṛgaṛáy) نر.م. چورلندی، څرخ.

**ګړګوتی** (gaṛgūtáy) نر.ج. ګونځې، ګونجې، ګالګوتي، هغه وېښته چې تاوراتاو وي.

**ګړګور** (gaṛgū́r) نر.م. د آسمان ګړاری، ګړار، تنا.

**ګړګوزه** (gaṛgóza) ښځ.م. ګړبوزه، د تبې لړزه.

**ګړګی** (gaṛgə́y) ښځ.م. دایره، ګرد، ګردی.

**ګړماچی** (gaṛmāčáy) نر.م. وګ. ګړونج.

**ګړماګړ** (gáṛmāgáṛ) نر.م. ډېر شور، شور ځوږ.

**ګړماله** (gaṛmālá) ښځ.م. وګ. ګرماله.

**ګړمانج** (gaṛmā́ng) نر.م. مازو، ګړوانجو، د ښېرې د ونې غوټه.

**ګړمبهار** (gṛambahā́r) نر.م. ګړمبا، د توپ او بم د چاودنې پرله پسې آوازونه.

**ګړمچی** (gaṛamčáy) نر.م. وګ. ګړونج.

**ګړمن** (gaṛmán) ص. نر.م. شپه روني، بې خوبه.

**ګړن** (gaṛán) ص. نر.م. ۱) شپه روني؛ ۲) ستړی.

**ګړنپوهنه** (gṛanpohána) ښځ.م. غونډ پوهه، هغه څانګه چې له ګړنو څخه ګړېږي، اصطلاح پېژندنه، فقره پېژندنه.

**ګړنج** (gṛanj) نر.م. شرنګ، شرنګ، د تورو جنګېدو آواز.

**ګړنجانی** (gṛanjānáy) نر.م. ګینګړی، جرس، ګړنجوونی.

**ګړنجول** (gṛanjawə́l) مص. مت. له تورو نه شرنګا ويستل، شرنګول.

**ګړنجار** (gṛanjahā́r) نر.م. د جرس د ټنګېدو پرله پسې آواز.

**ګړنجېدل** (gṛanjedə́l) مص. ل. د تورو جنګېدو له امله نری شرنګ وتل، شرنګېدل، کړنګېدل.

**گړنجی کتار** (graṇjaykatā́r) نر.م. د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**گړند** (garánd) ص. نر.م. ۱) خوله ور، ژبور؛ ۲) مج. چالاک سړی؛ ۳) یوه اغزنه غرنۍ ونه ده.

**گړندر** (graṇdár) نر.م. کرندر، شمهر، عدد.

**گړندوالی** (garaṇdwā́lay) نر.م. خوله ورتوب، ژبور توب، په خبرو کې تېزوالی.

**گړندی** (g raṇdáy) ص. نر.م. ۱) چست و چالاک، تکړه، چابک؛ ۲) مج. رسېدلی مرشند.

**گړندۍ** (garaṇdə́y) ښځ. م. ج. چرموښکی، چخوړکی، د کورونو یوه خزنده ده.

**گړندي والی** (g raṇdaywā́lay) نر.م. چستي، چالاکي، تېزي او تونډي.

**گړنگ**[۱] (garáng) نر.م. ۱) لویه کنده؛ ۲) په غره کې لویه کنده، د سیند لوی ژور ځای.

**گړنگ**[۲] (graṇg) نر.م. ۱) د پزې تېنګه مایع، کړمېزه، گړینگ؛ ۲) مج. د سترگو اوبه.

**گړنگن** (graṇgán) ص. نر.م. کړمېزن، گړنگور، گړنگوش، هغه څوک چې پوزه یې تل بهېږي.

**گړنگین** (garaṇgín) ص. نر.م. لوړ، هسک.

**گړنه** (graṇa) ښځ.م. هغه لغوي گروپ چې یوه دریمگړې مانا ښندي، اصطلاح، محاوره.

**گړنی** (graṇáy) نر.م. گړهاري، ويناییز، شفاهي.

**گړنی ادب** (graṇayadáb) نر.م. گړهاري یا ويناییز ادب، شفاهي ادب.

**گړنیز** (graṇíz) نر.م. د گړنې (اصطلاح، محاورې) اړوند، اصطلاحي، محاوروي.

**گړو** (garū́) نر.م. گراکو، چلم، چېلم.

**گړوانجو** (garwānjū́) نر.م. و گ. گړمانج.

**گړواز** (garwā́z) ص. نر.م. ۱) ارت، وېر، پراخ؛ ۲) سرلوڅی، سرخلاصی.

**گړوب** (guṛū́b) نر.م ۱) گړب، په اوبو کې د یوشي د رالوېدو آواز؛ ۲) نرویه ختهاو نور شیان.

**گړوبر** (garubár) نر.م. گړه بړه، خبرې اترې کونه.

**گړوبن** (garobán) ص. نر.م. بلغمي؛ هغه څوک چې په سینه یې بلغم پراته وي.

**گړوبول** (grubawə́l) مص. مت. ۱) په یو ځل ورانول؛ ۲) ښورول، خوځول، شنډول.

**گړوبی**[۱] (guṛubáy) نر.م. ۱) د گوړې شربت؛ ۲) ډېر خوږ شی.

**گړوبی**[۲] (grūbáy) نر.م. د سینې بلغم یا خراشکی.

**گړوبی**[۳] (garubáy) نر.م. پس آو، هغه اوبه چې په ویاله کې تر تړلو وروسته بهاندې وي.

**گړوبېدل** (grubedə́l) مص. ل. ښورېدل، او په یو ځل ورانېدل.

**گړوځه** (garū́ja) ښځ.م. بې پیو او وچه غولانځه.

**گړول** (garawə́l) مص. مت. په خبرو راوستل، له چا نه خبرې راوېستل.

**گړونج** (garwánj) نر.م. گړونچی، گروچی، گړماچی د منگي اینبودلو لپاره د لرگي کتکی.

**گړونگه** (garwánga) ښځ.م. جروبی.

**گړوۍ** (garwə́y) ښځ. م. ج. جیسرۍ، کوزنۍ، کوزه گی، هغه لوښی چې لاستی لري.

**گړوېزونه** (garwezū́na) گر. گړدودي ویبونه، واژهای گویشي.

**گړهار** (garahā́r) نر.م. ج. گړېړ، گړوبړ، خبرې اترې، گپ شپ.

**گړهاري** (garhārī́) ښځ.م. ويناییز، گړنی، شفاهي، محاوروي.

**گړه بنده** (garabánda) ښځ.م. په غره کې لویه سمڅه.

**گړهل** (garhə́l) نر.م. ۱) یو بوټی چې ښایسته گل نیسي؛ ۲) ډول، بالټی، متکی.

**گړی** (garáy) نر.م. ۱) منگی؛ ۲) برج، شینگړی، اتاری، بورجل.

**گړۍ** (garáy) ښځ.م.ج. ۱) گېنتهه، ساعت؛ ۲) په سیند کې ډېر ژور ځای؛ ۳) زېمناک ځای.

**گړیال** (garyā́l) نر.م. زنگ لرونکې ډېوالي گړۍ.

**گړیال برج** (garyālbráj) ص.نر.م. ساعت واله برج، گړۍ واله برج، هغه برج چې ساعت پکې ټینگ شوی وي.

**گړیالی** (garyā́lay) نر.م. ساعت ښیونکی، هغه سړی چې د ساعت ښودلو وظیفه لري.

**گړۍ بند** (garə́ybánd) نر.م. دگړۍ بند یا تسمه، د گړۍ زنځیر.

**گړیچ** (grič) نر.م. سخته لاره، داسې لاره چې تگ راتگ پرې گران وي.

**گړیچۍ** (garičə́y) ښځ.م. غوچاړی، کوغالی، په ځمکه کې د نیالگیو کینولو لپاره وره کنده.

**گړېدل** (garedə́l) مص.ل. ۱) خبرې کول، گړه بړه کول؛ ۲) گړېدل، کړېدل.

**گړیز** (garíz) نر.م. د گړ اړوند، د مورفیم اړوند، مورفیمیک.

**گړۍ ساز** (garaysā́z) ص.نر.م. گړۍ والا، ساعت ساز، گړۍ جوړوونکی.

**گړۍ سازي** (garaysāzí) ښځ.م. د ساعت جوړونې کارخونه، ساعت جوړونه، گړۍ رغېدنگځای.

**گړۍ ستن** (garaystə́n) ښځ.م. د ساعت ستن، عقربک.

**گړیستنه** (garistə́na) ښځ.م. ببلنگ، آرپوهه، اشتقاق و تصریف، فقه اللغة.

**گړۍ گر** (garaygár) ص.نر.م. گړۍ ساز، ساعت ساز، ساعت جوړوونکی.

**گړېگینه** (garegína) ښځ.م. د لم جزغالی.

**گړیل** (garayə́l) مص.مت. د ډېواله ښخ سپړل د خوځولو لپاره.

**گړۍ ماتی** (garaymā́tay) نر.م. دکوچنیانو یوه لوبه.

**گړینگ** (gring) نر.م. و.گ. گړنگ[۲].

**گړینگی** (gringáy) نر.م. جرس، وړوکی گونگرو.

**گړي وال** (gariwā́l) ص.نر.م. هغه سړی چې په کتهوو کې مستې د کلیو نه بازار ته د خرڅولو لپاره راوړي.

**گړۍ والا** (garaywālā́) ص.نب. ساعت پلورونکی.

**گړۍ والا** (garaywālā́) ص.نر.م. ۱) منگی خرڅوونکی؛ ۲) مج. کلال.

**گز** (gaz) نر.م. ۱) د طول د اندازه کولو یو واحد دی؛ ۲) دتوپک سیخ؛ ۳) و.گ. غز؛ ۴) د لرگي یوه آله چې د اوړو پېړه پرې د تبۍ پاسه اواروي؛ ۵) یو ډول غشی دی؛ ۶) دام. لومه.

**گزابی** (gazābáy) ص.ښځ.م. بې عقله، لوړه دنگه، کم عقله او کچه ښځه.

**گزار** (guzā́r) نر.م. وهل، وار، گوزار، ډب، درب.

**گزارش** (guzārə́š) نر.م. ۱) عرض؛ ۲) بیان.

**گزارل** (guzārə́l) مص.مت. ۱) گوزارول، غوزارول؛ ۲) ادا کول، ترسره کول.

**گزارول** (guzārawə́l) مص.مت. ۱) گوزارول، غوزارول؛ ۲) ځملول، په ځمکه راویشتل.

**گزاره** (guzārá) ښځ.م. گوزاره؛ ۱) گزران، وخت اړونه؛ ۳) مج. زغم، حوصله.

**گزاري** (gazā́n) نر.ج ۱) دخولې نسوار؛ ۲) گیزاري ؛ د غنمو میده شوي وړي.

**گزارېدل** (guzāredə́l) مص.ل. گوزارېدل، غوزارېدل پرېوتل، ارتاوېدل.

**گزانه** (gazānā́) ښځ.م. په گز، د گز په حساب.
**گزبره** (gazbára) ښځ.م. اعلی ورېښمين قناوېز.
**گزبوټي** (gazbū́ṭi) نر.ج. دستک، لاړي.
**گزک** (gazák) نر.م. ۱) د زخم پاړسوب، د زخم اوبه پټونه؛ ۲) ص. پړسېدلی، نمجن، التهاب.
**گزک بوټی** (gazakbū́ṭay) نر.م. د بارتنگو بوټی.
**گزکه** (gazáka) ښځ.م. کوړکی، لومه، پړکه، د وړو مرغيو نيولو لپاره پړکه.
**گزگومبت** (gazgombā́t) ص. نر.م. گډوډ، وران، ويجاړ.
**گزمه** (gazmá) ښځ.م. (ج. گزمې) د شپې گرځېدنه، پيره دار.
**گزول** (gazawā́l) مص.مت. ۱) گز کول؛ ۲) اندازه لگول؛ ۳) مج. غځول، خورول، اوږدول.
**گژدنه** (gažˇdána) ښځ.م. تنفس، سا اخيستنه.
**گژوژ** (gažˇwā́žˇ) ص. نر.م. گډوډ، کوږ وږ.
**گژې** (gážˇe) ص.ج. کاږه، په ترخ، په ډډه.
**گژی** (gažˇā́y) ص. نر.م. ۱) جوتي غوبی چې د قولبې يا گانې لپاره تيار شي؛ ۲) بلد، رضا.
**گږ** (gaẓ) ص.نر.م ۱) گږويښتی، د پاخه عمرخاوند؛ ۲) نيمه پخه شوې مېوه؛ ۳) يو ډول مرز؛ ٤) برگ، ابلق؛ ٦) مج. دوه مخی، منافق.
**گږويښتی** (gaẓwiṣṭáy) ص. نر.م. هغه څوک چې نيم ويښته يې تور او نيم سپين وي.
**گږويښتي** (gaẓwiṣṭí) ص.نر.م: کره توب، د پاخه عمرخاوند توب.
**گږهار** (gaẓahā́r) نر.م. گږکی، د کلکو شيانو يو بل سره دلگېدو آواز.
**گږی** (gaẓáy) ص. نب. د نهيلی او مايوسی په حالت کې کاږه کاږه کتل.
**گس** (gas) ص. نر.م. کين، چپ، گڅ.

**گستاخ** (gustā́x) ص. نر.م. ناړامه، بې ادبه، بې شرمه، چاودينک، سپين سترگی، بې حيا.
**گستره** (gastára) ښځ.م. غوڅکی، سخوندره، هغه خوسی چې پوره کېدو ته نېږدې وي.
**گسکه** (gaská) ښځ.م. کتمل، منگوړه، خسک.
**گسه** (gasá) ښځ.م. ۱) تهله، ډيچکه، ديکه، تېل؛ ۲) نقصان ورکونه؛ ۳) هغه آله چې اوږد لاستی لري او گوړه پرې پخېږي.
**گسيا** (gasyā́) ص. ښځ.م. ۱) سوده، خالص؛ ۲) راکښلی شوی؛ ۳) سره نښتی، ورپورې.
**گشت** (gašˇt) نر.م ۱) چکر، دور؛ ۳) پېره، څوکی؛ ۳) سيل، گرځېدنه.
**گشتی** (gašˇtáy) ص. ښځ.م. ۱) شليته؛ ۲) مج. متېزه؛ ۳) آواره گرده.
**گښت** (gaṣt) نر.م. ۱) عمل، استعمال؛ ۲) سيل، دور، دوران.
**گفت** (guft) نر.م. ۱) خبره، وينا؛ ۲) مج. ازار، ښېرا، گف.
**گک** (gak) نر.م. د تصغير علامه، لکه سترگک.
**گکږی** (gakẓáy) نر.م. جزغالی، کښکری، ززغاله، بوگری، سره کړې وازده.
**گگ** (gag) ص. نر.م. ۱) د سرو مچيو څاله؛ ۲) مج. د ښځې غتوالی؛ ۳) ځپياکه؛ ٤) ډډ، ډانچه.
**گگر** (gagár) نر.م. ۱) آهنگر؛ ۲) مضبوط، تکړه.
**گگروزه** (gagrū́za) ښځ.م. ۱) ړچ، رپ، رږی؛ ۲) د تبې لړزه.
**گگره[1]** (gagára) ښځ.م. جغل، کانېزه شگه، هغه شگه چې واړه واړه کاڼي په کې وي.
**گگره[2]** (gágra) ښځ.م. گاگره، شره نښتې تيږې.
**گگره[3]** (gagrá) ښځ.م. ۱) هغه اوږد کميس چې ټټر يې واز وي؛ ۲) ټټر، سينه.

ګګری (gagráy) نر.م. غوز، اکوړ، چارمغز.
ګګړ (gagúṛ) ص. نر.م. ګاګړ، زوړ، بوډا، بوډغ.
ګګړوزه (gagṛū́za) ښځ.م. ګړبوزه، ګکروڅه.
ګګژی (gagžáy) نر.م. و ګ. ګکړی.
ګګو (gagū́) نر.م. روی، باګو، بګاولی، شیشکه.
ګګۍ (gagə́y) ښځ.م. ځلۍ، سنۍ، سوتلۍ.
ګل(۱) (gal) نر.م. غته غته ړلۍ، هغه ړلۍ چې غټې غټې دانې ولري.
ګل(۲) (gwal) نر.م. ۱) جنډۍ، کوګۍ، سپېرلې شوې غوټۍ؛ ۲) په بدن کې دداغ نښه ۳) خندق.
ګلاب (gwalā́b) نر.م. ګل ګلاب، یو ډول ګل دی.
ګلابتون (gwalabatū́n) نر.م. ج. زرتار، زرتاری.
ګلاب جامن (gwalābjā́mən) ص. نر.م.ج. یو ډول غوټۍ غوټۍ متایي.
ګلابوماتابو (gwalābū́mātābū́) نر.ج. د کوچنیانو یو ډول لوبه، میرغالی، میرغواله.
ګلابي (gwalābí) ص. نر.م. ۱) نایي، ډم، دلاک، سلماني؛ ۲) ګلاب رنګی، ګلاب ته ورته.
ګلاټه (gulā́ṭa) ښځ.م. و ګ. ګلاله.
ګلارګین (gulārgī́n) ص. نر.م. سخت، درشت.
ګلاله (gulālá) ښځ.م. ګلالی، کوتالی، ګلاټه، پخه شوې سره ببره.
ګلالی (gwalālə́y) ص. نر.م. ښایسته، ښکلی.
ګل اندام (gwalandā́m) ص. نر.م. ۱) نرم و نازک بدن لرونکی؛ ۲) مج. معشوقه. محبوبه.
ګلانه (gulā́na) ښځ.م. هغه شی (پیسې) چې چاته د زېږي په راوړو ورکول کېږي.
ګلبارخو (gwalbārxū́) ص. نر.م. ګل [illegible]ګي، ګلعذار، ګل رخسار.
ګل ببری (gwalbabrā́y) نر.م. دزنانه وو په ټیکر یو کې یو ډول ګلکاري.

ګلبخور (gwalbaxúr) نر.م. ګلخوریه، سونګری، هغه بوټی چې د قوت باه د زیاتولو لپاره په چلم کې څکل کېږي.
ګلبدن (gwalbadán) ص. نر.م. ۱) نرم و نازک بدن لرونکی؛ ۲) مج. معشوق، محبوب؛
ګلبرګ (gwalbárg) نر.م. د ګل رنګینې پاڼې.
ګلبڼ (gwalbáṇ) نر.م. ګلباغ، د ګلو باغ، ګلستان، ګلزار.
ګلبوټی (gwalbū́ṭay) نر.م. د ګل بوټی، بته ګل.
ګلپاڼه (gwalpā́ṇa) ښځ.م. د ګلو پاڼه، د ګل پاڼه، ګلبرګ.
ګل پاڼېزک (guwalpāṇizák) نر.م. یو ډول سابه.
ګلپرخه (gwalpárxa) ښځ.م. پرګلپاڼه پرته پرخه، پرګلپاڼه شبنم.
ګلپرهر (gwalparhár) نر.م. د پرهار ګل (شاعرانه تخیل).
ګلپلور (gwalplór) ص. نر.م. ګل پلورنه، ګل خرڅونه، ګل فروشي.
ګلپلوری (gwalplóray) ص. نر.م. ګل خرڅوونکی، ګل پلورونکی، ګل فروش.
ګلپوش (gwalpṓš) نر.م. مف. ۱) په ګلانو کې پټ شوی؛ ۲) مج. دګلونو په څېر جامې اغوستی.
ګلپي (gwalpí) نر.م. ګوپي، یو ډول سابه دي.
ګل تنۍ (gwaltaṇə́y) ښځ.م. د اسپې په غاره کې ترل شوې پټۍ، پټاره یې هم بولي.
ګل توت (gwaltū́t) نر.م. د غټو پاڼو لرونکی هغه توت چې د کاغذ په جوړولو کې کارځنې اخلي.
ګلټ (gılát) نر.م. ج. ۱) زېړ رنګ لرونکی فلز؛ ۲) د تورېک ګېټ.
ګلټول (gılaṭawə́l) مص. مت. رنګول، په ګلټو ملمع کول، زرل، زرو بول.

**گلټي** (gılcı́) ص. نب. د گلټ، گلټ ته منسوب.
**گلټېدل** (gılaṭedə́l) مص.ل. په گلټو باندې يو شی ملمع کېدل.
**گل جړی** (gwaljaṛə́y) ښځ.ج. گل ځړی، نښه، ځړی، نښانه، نښکه، کهاړه، گل ځړی.
**گلچ** (gıláč) نر.م. توبره، خورځی، خورجين.
**گلچين** (gwalčín) ص. نر.م. ۱) کوکې ځانی، گل ځان، څوک چې گلان ټولوي؛ ۲) مج. باغوان.
**گلځاند** (gwalčánd) ص.نر.م. (ج.گلځاندي) گل ځانی، گل ځاندی، گلچين.
**گلځاندي** (gwalčāndí) ښځ.م. گل اوښنه، گل اونون، گلچيني.
**گل ځانی** (gwalčāṇáy) ص.نر.م. وگ. گلځاند.
**گل څېر** (gwalčér) ص. نر.م. گلچهره.
**گلخونه** (gwalxṹna) ص. ښځ.م. د گلونو ساتلو ځای، کوکی خونه.
**گلخرينگه** (gwalxaríṅga) ښځ.م. مينا، ښارو، ښارونی؛ يوه مرغۍ ده چې زر روږدې کېږي.
**گلخوره** (gwalxurá) ښځ.م. وگ. گلبخوره.
**گلخی** (gwalxə́y) ښځ.م. دارو، يو نغری چې کوچنيان په کې گازرې پخوي.
**گلخينگی** (gwalxíngay) نر.م. يو تريخ بوټی چې شين گل لري.
**گلدانی** (gwaldānə́y) ښځ.م. گلنی، د گلو د ايښودلو کلالي لوښی.
**گلدوز** (gwaldúz) فا.نر.م. هغه څوک چې په ټوکرانو کې گلان گنډي.
**گلډ** (glaḍ) نر.م. خريلی سر، بې ويښتو سر.
**گل ډاگ** (gwalḍā́g) نر.م. گل دښت، گلميره، گل بيابان.
**گلډانگ** (gwalḍā́ng) نر.م. يو ډول سپی.

**گل رانی** (gwalrāṇáy) ښځ.م. کمبلی، بابکی، ببيرکه، يو ډول الوتونکی حشره ده.
**گلرخ** (gwalrúx) ص.نر.م. گلالی، پی مخی، گلرو، گل مخی، د گل په څېر مخ لرونکی.
**گلزار** (gwalzā́r) نر.م. ۱) د گلونو ځای، د گلشن، کوکيانه؛ ۲) مج. باغ، گلستان.
**گل زويه** (gwalzoyá) ښځ.م. د غره چای، سمسوک، يو ډول گل دی چې د چايو پر ځای کارېږي.
**گل زېړی** (gwalzeṛə́y) ښځ.م. وگ. گلجړی.
**گلږلی** (galẓalə́y) ښځ.م. گل (gal) هغه غته ږلی چې فصلونه خرابوي.
**گلساز** (gwalsā́z) ص.نر.م. خپلاسي (مصنوعي) گل جوړوونکی.
**گلسرين** (galısrín) نر.م. يو ډول مايع غوړ دارو.
**گلسيمه** (gwalsíma) ښځ.م. د گلو سيمه، د گلو منطقه، ساحه، گل.
**گلشک** (gwalšák) نر.م. گلاشک، يو ډول غرنی گل دی چې بنفش رنګ لري.
**گلعذار** (gwalʕuzā́r) ص. نر.م. ۱) د گل په څېر رخسار لرونکی؛ ۲) مج. معشوق، گل غوټی.
**گل غوټی** (gwalğuṭə́y) ښځ.م. گل مونگره، ناغوړېدلی گل، منجره، بنجره.
**گل غونچه** (gwalğwančá) ښځ.م. گلموښته، گلغنچه، گل گېډی، د گلو گېډی.
**گلفام** (gwalfā́m) ص. نر.م. گلفم، تنگه خوله؛ ۲) مج. مشعوق، محبوب.
**گلقند** (gwalgánd) نر.م. گل کند، يو راز دارو دی چې د گلابو له گل څخه جوړېږي.
**گلکار** (gılkā́r) ص. نر.م. ختمگر، معمار.
**گل کاري** (gwalkārí) ص. ښځ.م. په جامو او کې د گلانو او بوټو نقشې جوړولو کار.

**گلکاري** (gılkārí) ص. ښځ.م. د ختو او تیږو یا خښتو دېوال جوړونه، معماري، ختګري.

**گل کڅ** (gwalkáć) نر.م. گل ورشو، گل لرونکی کڅ.

**گلکڅونه** (gwalkacū́na) نر.ج. د گلونو کڅونه، د گلونو ورشوګانې.

**گل کر** (gwalkár) نر.م. د گلو کر، گل کرنه.

**گل کنکړ** (gwalkankáṛ) نر.م. گل ډنډر، بندک.

**گلگنډ** (gwalgánḍ) نر.م. گل گنډنه، سکوینه، گل دوزي.

**گلگنډنه** (gwalganḍə́na) ښځ.م. و.گ. گلگنډ.

**گلگون** (gwalgū́n) ص. نر.م. ۱) د گل په څېر، گلرنگ؛ ۲) مج. سور رنگ.

**گلگی** (gılagáy) نر.م. دغوا وروکی خوسکی.

**گل گېډۍ** (gwalgeḍə́y) ښځ.م.ج. گلدسته، گل غونچه، د گلونو گېډۍ.

**گل گل** (galgál) نر.م ۱) کلکل، غرتو، تتو، غرتن؛ ۲) د نارنج په څېر یوه مېوه.

**گل گوتي** (galguṭí) ص.نر.ج. و.گ. گاړگوتي.

**گل گوتو** (gwalgūṭū́) نر.م. ۱) د ښاروېو د مرۍ بندېدو یوه ناروغي؛ ۲) مج. د مرۍ غوټه.

**گل لښته** (gwallaṣ́ta) ښځ.م. د گلو لښته، د گل څانگه، شاخچه، گل.

**گلماخۍ** (gwalmāxə́y) ښځ.م. ۱) د سپینو زرو یوه ښځینه گاڼه؛ ۲) یو ډول بوټی دی.

**گلماله** (gılmālá) ښځ.م. ختموښی، ختماله.

**گلمخې** (gulmáxe) ص. ښځ.م.ج. د گل غوندې مخ لرونکې، گلرخه، گلرو.

**گل مړ** (gwalmáṛ) نر.م. کافرگل، نمرگله

**گلمل** (galmál) نر.م. ککړ، لیت پیت وینو او نورو شیانو ککړ، لړلی.

**گلملتوب** (galmaltób) نر.م. [illegible]

**گلملول** (galmalawə́l) مص. مت. ککړول، په ختو، وینو او نورو شیان لیت پیتول.

**گلملېدل** (galmaledə́l) مص.ل. ککړېدل، لیت پیتېدل.

**گل موښته** (gwalmuṣ́ta) ښځ.م. گل گېډۍ، گل غونچه.

**گل مونگره** (gwalmūngrá) ښځ.م. گل غوټۍ، خوغاړه.

**گلمیا** (gulmyā́) ښځ.م. د کبانو د جال هغه خانې چې رسۍ په کې اچول کېږي.

**گل مېخ** (gwalméx) نر.م. غټ سری مېخ، گل مېخی.

**گل مېخۍ** (gulmexə́y) ښځ.م.ج. د سپینو زرو یو ډول پسول دی چې په لستونو کې یې ټک وهي.

**گلنار** (gwalnā́r) نر.م. ۱) د انار گل؛ ۲) سور رنگ لرونکی؛ ۳) نرگس ته ورته؛ ٤) یوه بې مېوې ونه چې د انار په څېر ده.

**گلندوری** (glandū́ray) نر.م. مرچ، سورمرچکی.

**گلو**[1] (gulū́) نر.م. هغه لرگی چې د ژرندې تیر له پل سره تینګوي.

**گلو**[2] (galū́) نر.م. ۱) توکه، شتی، ټانته؛ ۲) د کیوړې گل؛ ۳) ډومبکی، تمبکه، پیاځې، د گبین وړی.

**گلواره** (galwārá) ښځ.م. د آس څولۍ، خورجین.

**گلوانډ** (gulwánḍ) نر.م. د شومړو د کڅوړې د راغوړندولو تناب.

**گلوبند** (gulūbánd) نر.م. ۱) غاړه کۍ، یوه ښځینه گاڼه ده؛ ۲) دغاړې دسمال.

**گلوټ** (galwáṭ) نر.م. د غوښې توټه.

**گلوټه** (galuṭá) ص. ښځ.م. ۱) د غوښې یا د ختو غټه ټوټه؛ ۲) غټه مرۍ، غټ کپ، خمڅه.

گل ورشو (gwəlwarṧó) ښـځ. م. د گلـو ورشـو، گلسیمه، بیشه، گل.

گلورین (gulwarín) نـر. م. گل وروونکـی، گل نولونکی، گل باران، گلرېز.

گلوزمه (gwəlwázma) ښـځ. م. گلـرنگه، گل ته ورته، گل غوندې، گلفام.

گلوزم (gwəlwázam) نر. م. گل بوی، د گل بوی.

گلوښته (galúṣta) ښځ. م. متروکه، قمچینه.

گلول (gwalawə́l) مص. مت ۱) اور مر کول؛ ۲) مج. زغمل، تحمل کول.

گلوله (galulá) ښځ. م ۱) وروکی غونداری، گیتۍ؛ ۲) گلگله، پکوړه؛ ۳) گولۍ، کارتوس.

گل وله (gwəlwála) ښځ. م. د گلونو والا وله، گل بید.

گلوه (galwá) ص. نـر. م. ۱) یو ډول مرز چې توره یا سـره غـاړه لـري؛ ۲) ص. ښـځ. م. د غـوایي د خرمنې شا وخوا چې گندل شوې وي.

گله (galá) ښځ. م. رمه، پاده، کنډک، گورم.

گله بان (galabā́n) ص. نر. م ۱) شپون، شپونکی؛ ۲) پاده وان، ساروان؛ ۳) اسبون، اسبه.

گله گله (gálagála) د مرزانو د نیولو لپاره آواز.

گله گرگی (galagárgay) نر. ج. گگرگی، د واورې وړې وړې دانې چې د ږلۍ غوندې وربېږي.

گلۍ (galə́y) ښځ. م ۱) ږلۍ؛ ۲) د کوچنیانو یوه لوبه.

گلی (guláy) نـر. م. ام الصبیان، د کـوچنیانو یوه ناروغي ده.

گلي (gulí) ص. یو ډول سره منه.

گلې (galé) ښـځ. ج. یوه ناروغي ده چې په مـرۍ کې غوټې پیدا کېږي.

گلیا (galyā́) ص. نب ۱) ډېر پوخ، خوږین؛ ۲) وېلې شوې؛ ۳) ډنگر، لاغر، خوار.

گلیخار (gulixā́r) نـر. م. یو ډول سره درمل چې د ستر گو او خولې پخېدو لپاره کارېږي.

گلټي (guloṭáy) ص. نر. م. یو ډول ټوپک و.

گلېدل (galedə́l) مص. ل. ۱) ډنگرېدل، خـوارېدل؛ ۲) وېلې کېدل.

گلېډنډه (galeḍánda) نـر. م. ډنډه گولۍ، شوټی ډنډې، کیېچ ډنډې، د کوچنیانو یوه لوبه.

گلېگه (galegá) ښځ. م. شودیاره شوې څمکه.

گلیم (glím) نر. م. تغر، ځبنۍ، کښلی.

گلیون (gwalyū́n) نر. م. د گلو سیال، په گلونو کې گرځېدنه، گل ننداره، گلگشت.

گم[(1)] (gam) نـر. م. ج. ۱) سرېښ، ښلېښ، سرېښ؛ ۲) اوری، د غاښونو ښخ پوښونکې غوښه.

گم[(2)] (gum) ص. نر. م. ۱) ورک، غایب؛ ۲) ضایع، توی؛ ۳) ناپیدا؛ ٤) مج. پریشان، وارخطا.

گمارل (gumārə́l) مص. مت. ۱) گـومـارل، امر کول؛ ۲) مقررول، سپارل؛ ۳) پـارول، پاځول؛ ٤) انگېدل، ننگېدل.

گماروني (gumārū́nay) ص. نر. م. ۱) مشر، د سر سړی؛ ۲) لارښودونکی.

گمان (gumā́n) نر. م. و گ. گومان.

گمبش (gambúṧ) ص. نر. م. دلویو ږیرو یا پنجو خاوند.

گمبزی (gambízay) نر. م. نارنج.

گمبېزي سورن (gambézaysurán) نـر. م. نارنجي کونگ او مست اس.

گمبله (gambelá) ښـځ. م. کمـبله، گـومبـله، یوناني دوا ده چې ځاروېو ته ورکول کېږي.

گمراه (gumrā́) نر. ج ۱) بې لارې، ښویېدلی؛ ۲) مج. بې دینه؛ ۳) اوړېدلی، بې لارې.

گمرک (gumrák) نر. م. هغـه دولتي اداره چې له سرحد نه د مالونو دصادرولو او واردولو مالیه

او محصول اخلي.

**گمند** (gamánd) ص. نر.م. گمنده، چاغ سړی.

**گمه** (gamá) ښځ.م. ورو کی لښتی چې د مرغیو نیولو دام په کې ږدي.

**گمیزه** (gamíza) ښځ.م. و.گ. گومبته.

**گن** (gan) نر.م. ۱) عادت، خوی؛ ۲) ښه والی؛ ۳) جوهر، هنر؛ ٤) غوزه، د اوښانو او غوایانو غټ منگور.

**گناه** (gunāh) ښځ.نر.م. ۱) وبال، بدکار، بد عمل، جرم، خطا؛ ۲) نافرماني.

**گناهکار** (gunāhkā́r) ص.نر.م. د خدای گناهکار، مجرم، بدکاری، گناهگار.

**گنانگول** (gunāngúl) نر.م. غرنی پالک، شلخی.

**گنايي** (ganāyī́) ښځ.م. دژرندې آبخانه، لمخانه، د ژرندې تر کوټې لاندې د اوبو د تېرېدلو ځای.

**گنترې** (gantráy) نر.م. گنتی، گېنتۍ، کو لنگ.

**گنته** (gantá) ښځ.م. گونته، گنتی.

**گنتی** (gantáy) ص. نر.م. لنډی، منډی، چیتکی، ټیټکی سړی، مندری.

**گلتی** (gal táy) ښځ.م. غرنی بوټی دی چې ښځې یې د کالو پر یمینځلو لپاره کاروي.

**گنټه** (gɪnṭá) ښځ.م. شپېته دقیقې، یو ساعت.

**گنټۍ** (ganṭáy) ښځ.م. گنته، گنترې، یو ډول کودالی چې سخته ځمکه پرې کنستل کېږي.

**گنج** (ganj) نر.م. ۱) خزانه، گنجینه؛ ۲) زېرمه، گودام؛ ۳) د مېوې راغونډولو شکرې؛ ٤) د سر وېښته نه کېدل، گنجیتوب.

**گنجایش** (gunjāyáš) نر.م. ۱) ځایېدنه، ځای؛ ۲) مج. فایده، بچت.

**گنجپور** (ganjpū́r) نر.م. کونی کبر، چنگابښ، کوني‌کاتر.

**گنجرخی** (ganjarxáy) نر.م. د ورخونو موړی په ورخونو کې د اوبو د وېشلو لرگی.

**گنجره** (ganjrá) ښځ.م. غازه، سرخي، پوډر.

**گنجلک** (gunjulúk) نر.م. و.گ. گونجلک.

**گنجور** (ganjū́r) ص.نر.م ۱) خزانه؛ ۲) خزانه دار.

**گنجی** (ganjáy) ص. نر.م. ۱) پک، لمبډا؛ ۲) د جوارو هغه وږی چې یو څو دانې په کې وي.

**گنجۍ** (ganjáy) نر.م ۱) جاکټ، بنیان؛ ۲) غونډاری، د سنیو غونډاری؛ ۳) ښځ.م. ج. ټپوس غونډې. یو مردار خور مرغه.

**گنجینه** (ganjína) ښځ.م. خزانه، مخزن، زېرمه.

**گنچه** (gančá) ښځ.م. گنځه، غوري مست، یو ډول خودرویه خوشبویه بوټی دی.

**گنځې** (gunjé) ص. ښځ. م. ج. و.گ. گونجه.

**گنځپه** (ganjapá) ښځ.م. ۱) گنځپه؛ یو ډول گیډړه ده؛ ۲) نولی.

**گنځه** (ganjá) ښځ.م. ځنځه، خنځه گوته

**گند**(۱) (gand) نر.م. ۱) خځلې؛ ۲) چټلي، ناپاکي؛ ۳) مج. بدبويي؛ ٤) خوسا.

**گند**(۲) (gand) اد. گونډې، گنې، گڼه، گنې.

**گنداو** (gandā́w) نر.م. ولاړې اوبه، ولاړې خوسا شوې اوبه.

**گندبلا** (gandbalā́) ښځ.م. ناولتیا، بېکاره او معمولي شی.

**گندخېره** (gandcéra) ښځ.م. ځانبکه، ښارکه، شامتوره، یو ډول توره مرغۍ ده.

**گندک** (gandák) نر.م. گوگړ، گندهک، گیگړ، یو ډول کېمیاوي معدني سلفر.

**گندکه** (gandaká) ښځ.م. د بېډې یا سپېښتې یو ډول لوبه چې (سه بجل) یې هم بولي.

**گندگي** (gandagí) ښځ.م. ناولی ځیز، خوسا شی.

**ګندنه** (gandaná) ښځ.م. اړکۍ، کوکۍ.

**ګنده** (gandá) ص. ښځ.م. ۱) ناپاک، ناولی، پلید؛ ۲) بدکردار، شرير؛ ۳) زړه خرقه، د ملنګانو کنډ؛ ٤) هغه غله چې نايي يا استاکار يې د کال په پای له خلکو نه اخلي.

**ګنده بوټی** (gandabū́ṭay) نر.م. يو ډول تريخ، خودرويه بوټی دی.

**ګندړی** (gandəṛáy) نر.م. يو غرنی بوټی دی چې بدبوی لري او ګنده فېروزه ورنه لاس ته راځي.

**ګنده خړ** (gandaxáṛ) نر.م. ګنده خړی، نېزوری، هغه خټلې چې سېلاوله ځان سره راوړي وي.

**ګنده خړه** (gandaxáṛa) ص. ښځ.م. ناولې، چټله.

**ګنده لېوه** (gandálewa) نر.م. سرکوزی، خنزير، سور، بدځناور، يېږ.

**ګنده مار** (gandamā́r) نر.م. ۱) زووېل، زاويل، خول؛ ۲) ګندګير، کوچکر، لاګ ساک.

**ګنده نل** (gandanál) نر.م. دورمه، کړکی.

**ګنده هوږه** (gandahū́ẓa) ښځ.م. ګندنه.

**ګندېر** (gandér) نر.م. و.ګ. ګنډېری.

**ګندېرڅر** (gandercár) نر.م. ګندېرچر، ګنډېری، زهربوټی، ګنده څر.

**ګنډ** (ganḍ) نر.م ۱) ګينده، جوړېښت سکوی، ټکی؛ ۲) ډول، هغه ټوټه چې د ګرېوانه لاندې ګنډل کېږي؛ ۳) پاموړه.

**ګنډاسه** (ganḍā́sa) ښځ.م. درنه چاړه، توکيا، توکه.

**ګنډڅېره** (ganḍcerá) ښځ.م. ځابنکه.

**ګنډکپ** (ganḍkáp) ص.نر.م. ګڼ ګپ، دوکه باز، کيسه بر، جېبونه وهونکی.

**ګنډګين** (ganḍgín) ص.نر.م. نخي، سپنسين.

**ګنډل** (ganḍə́l) مص. مت. ټکوهل، بخي، تېړول، سره يو کول (په ستن ياد خياطی په ماشين).

**ګنډل پېړل** (ganḍəlperə́l) مص. مت. ګنډل، سکڼل، په ستن او تار کار کول.

**ګنډلی** (ganḍaláy) ښځ.م. ګنډه، غوټه، پنډه کی، پنډوکی، ګټلی.

**ګنډنی** (ganḍanáy) ص.نر.م. لنډ او بې لستوڼو کميس، ګنډولی، ګنډی.

**ګنډوپړ** (ganḍupáṛ) نر.م. ترنه پرانيستنه، اړوتړ، چل وتړ.

**ګنډون** (ganḍū́n) نر.م. ګنډنه، ګنډل، پيوند.

**ګنډونکی** (ganḍū́nkay) فا. نر.م. خياط، ګنډونی، هغه چې کالي ګنډي، درزي.

**ګنډونی** (ganḍū́nay) فا. نر.م. ګنډونکی، خياط.

**ګنډه** (gánḍa) ښځ.م. غوټه، پنډوکی؛ ۲) بډه، د پړتوګابډ ځای؛ ۳) د لرګي غوټه؛ ٤) مج. جادو.

**ګنډه څر** (ganḍacár) نر.م. ګنډېری، ګنډېر، خرزهره، سم الحمار.

**ګنډه ګنډه** (gánḍagánḍa) ص. ګونځې ګونځې، ګونجې ګونجې، کالکوټې.

**ګنډه تل** (ganḍatál) نر.م. و.ګ. ګندنه.

**ګنډه کول** (ganḍakawə́l) ښځ.م. غوټه کول.

**ګنډهېر** (ganḍhér) نر.م. ۱) ګنډېر، د زهرو په څېر ډېر تريخ؛ ۲) مج. د زهرو، وژونکی.

**ګنډی** (ganḍáy) ص. نر.م. ۱) و.ګ. ګنډولی؛ ۲) د دمړي څلورمه برخه، ۳) د پخوانی پيسې شپاړسمه برخه؛ ٤) د کوچنيانو لنډو لستوڼو والا کميس.

**ګنډۍ** (ganḍə́y) ص. ښځ.م. د وړيو يا پنبې جاکټ، کوچی، جمپر، د شپانه چينه.

**ګنډياره** (ganḍyā́ra) ښځ.م. يو ډول نبات دی چې ګنډياله يې هم بولي.

**ګنډېر** (ganḍér) نر.م. و.ګ. ګنډهېر.

گنډبرڅه (ganḍercá) ښځ.م. غټه مېره.
گنډېرمری (ganḍermaráy) ښځ.م. زهر مهره، تریاق، یو ډول مهره چې د زهرو اثر لیرې کوي.
گنډېرن (ganḍerə́n) نر.م. زهر لرونکی، هغه شی چې زهر لري.
گنډېری (ganḍeráy) ښځ.ج. د سپین کرې گني توته، ککیری، منتېری، گنېرکه.
گنډېری (ganḍeráy) نر.م. یو غنګلي او غرنی بوټی دی چې سره او سپین گلان کوي.
گنر (ganár) ص. نر.م. زوړ او ډنگر غویی.
گنس (gans) ص. نر.م. گیج، بې سده، بې هوښه.
گنستوب (ganstób) نر.م. بېهوښي، سرندالي، واګنتوب، گنستیا، سرگرداني.
گنسول (gansawə́l) مص.مت ۱) بېهوښه کول، گیچول؛ ۲) سرگردان کول، پریشانه کول.
گنسېدل (gansedə́l) مص.ل. ۱) بېهوښه کېدل، بې سده کېدل؛ ۲) پریشانه کېدل.
گنکي (gankí) ص. نب. د کومې سختې ضربې له امله بېهوښي پیدا کېدل.
گنگ (gáng) نر.م. ۱) دکوژدې بلنه؛ ۲) ص.نر.م وارخطا، اوتر؛ ۳) نر.م. تهکس، هغه پیسې چې یو هندو به د ځان د ژغورنې لپاره یو پښتون ته ورکولې؛ ۲) یو ډول مرغی؛ ۳) مج. ختیځ.
گنگان (gangā́n) نر.ج. یو ډول بوټی دی چې د پانو دوره یې د کوچنیانو په مغانو کې اچول کېږي.
گنگټ (gəngáṭ) نر.م. و گ. گونگټ.
گنگخر (gangxár) نر.م. وگ. گنده خر.
گنگخړ (gangxáṛ) نر.م (ج. گنگخړي) د سېلاب په مخکې واره واره لرگي.
گنگر (gangár) نر.م. د سندا د ملا تیر.
گنگره (gangrá) ښځ.م. کړاو، تکلیف، زحمت.

گنگري (gangarí) ص. ښځ.م. تېنگه ختېه.
گنگړ (gangáṛ) نر.م. یو ډول گانه یا پسول.
گنگس (gangs) ص.نر.م. ۱) وارخطا، سرگردان؛ ۲) بې خوده، بېهوښه، بې سده.
گنگستیا (gangstyā́) ښځ.م. گنگستوب، گنگسي، بېسدتیا، گیجي.
گنگ سنگ (gangsáng) ص.نر.م. گنگ منگ، غلی، چوپ، گونگ سونگ.
گنگسوونکی (gangasawū́nkay) نر.م. بېسدوونکی، بېهوښه کوونکی.
گنگلو (ganglū́) نر.م. تېپر، شلغم.
گنگو (gangū́) نر.م. ۱) زعفران؛ ۲) مج. زېړ، زېړونکی.
گنگوچه (gangučá) ښځ.م. د انگورو وړی، د انگورو غونچه، گنگوری، واښکی.
گنگوری (gangū́ray) نر.م. ډنډوری، د انگورو غوشه، د کېلو وړی، واښکی، د خرما وړی.
گنگوړه (gangūṛá) ښځ.م. گانگوړه، یو بوټی دی.
گنگوړی (gangū́ṛay) نر.م ۱) گانگوری؛ ۲) ترتری توتوری، تتله؛ ۳) گنگوسی، گونگوسه.
گنگوسه (gangūsá) ښځ.م. ۱) آوازه، شهره، انگازه ،ښکالو؛ ۲) افواه، د دروغو خبره خپرېدنه.
گنگوسي (gangūsé) ښځ.ج. و گ. گنگوسه.
گنگوماښام (gangūmāṣā́m) نر.م. رڼا ماښام، ماښام چې پوره تیاره نه وي، گونگوڼ ماښام.
گنگي (gangí) نر.ج. ۱) گنده گي، پلیتوالی؛ ۲) خخله؛ ۳) د تنې مرداري.
گنگېلا (gangelā́) ښځ.م. (ج. گنگېلاوې) انگولا.
گنگیله (gangilá) ښځ.م. و گ. انگوله.
گننی (gananáy) نر.م. وروکی ښیدی رودونکی وری.

**گننی** (gananáy) ښځ.م.ج. د اوښ پچه ، د اوښ سوټه.

**گنوار** (ganwā́r) ص.نر.م. ۱) باندېچی ، باندیځی؛ ۲) مج. ساده کلیوال سړی.

**گنه**(۱) (guná) ښځ.م. نښه ، گونه ، نښان ، علامت.

**گنه**(۲) (gána) اد. ۱) بارې ، گنې؛ ۲) ښځ.م. و گ. گناه.

**گنهار** (ganhā́r) نر.م. گنهار ، انگازه ، گوبار.

**گنه درو** (ganadráw) نر.م. ۱) د رشقې او شوتلو لومړنی لو؛ ۲) گنه درب ، نارسېدلی توت.

**گنهر** (ganahár) نر.م. یو ډول سابه دي.

**گنهگار** (ganahgā́r) نر.م. گنې ، نیشکر.

**گنهگاره** (gunahgā́ra) ښځ.م. گناهگاره ، جرمانه ، توغم ، جریمه ، کفاره ، د گناه معاوضه ، ناغه.

**گنې** (gáne) اد. نو ، نوبیا ، گوندې ، گنه.

**گنی** (ganáy) نر.م. (ج. گنې) نیشکر.

**گنۍ** (ganə́y) ښځ.م.ج. د مچیو یا ډنبرو گبین.

**گڼ** (gaṇ) نر.م. ۱) ډېر زیات ، په شمېر زیات ، گڼ گور ، سره نښتې دي؛ ۲) گورم ، پاده

**گڼا**(۱) (gaṇā́) ښځ.م. د گوڼ گوڼ اواز.

**گڼا**(۲) (gaṇā́) فا.نر.م. څوک چې په پوزه کې گڼ گڼ کوي ، چې ژبه یې نښلي ، د پوزې د هوا په مرسته خبرې کوونکی.

**گڼاری** (gaṇā́ray) نر.م. په پوزه کې د خبرو آواز ، د گڼېدو آواز ، د گوڼ گوڼ آواز.

**گڼتوب** (gaṇtób) نر.م. گڼتیا ، گڼوالی ، ډېروالی.

**گڼ رنگی** (gáṇrangay) نر.م. فصل رنگړی کونه ، له فصل نه گڼ بوټي ایستنه ، نري کول.

**گڼږی** (gaṇžáy) نر.م. گنگوسه.

**گڼ شمېر** (gáṇšmer) نر.م. گڼ ، ډېر ، زیات شمېر ، زیات تعداد.

**گڼ کپ** (gaṇkáp) ص. نر.م. و گ. گنډ کپ.

**گڼ کوریز** (gaṇkoríz) نر.م. هغه کلي ، سیمه چې گڼ کورونه ولري ، خانه های متراکم.

**گڼکی** (gaṇkáy) ص.نر.م. گڼ ، د گڼ تصغیر نوم ، لږ گڼ.

**گڼ گچه** (gaṇgacá) ښځ.م. د انگورو وږی.

**گڼ گڼ** (gáṇgaṇ) نر.م. په پوزه کې خبرې کونه؛ گونېدل ، بنگېدل.

**گڼ گڼی** (gáṇgaṇy) ص.نر.م. غوڼی ، په پوزه کې خبرې کوونکی ، خنخونی ، گوڼ گوڼی.

**گڼ گور** (gaṇgū́r) ص. نر.م. و گ. گور.

**گڼ گوندیز** (gaṇgwandíz) نر.م. گڼ گوندي ، ډېر گوندي ، ډېر حزبي ، څو گوندیز.

**گڼ گین** (gaṇgín) ص. نر.م. د سپنسیو ، سپنسین.

**گڼل** (gaṇál) مص. مت. ۱) قیاس کول ، خیال کول ، گومان کول؛ ۲) شمېرل؛ ۳) منل ، قبلول.

**گڼل کېدل** (gaṇalkedál) مص. ل. پوهېدل.

**گڼ مېشتی** (gaṇmeštay) ص.نر.م. گڼ استوگن ، پرنفوس لکه ښار یا هېواد.

**گڼ مېشتي** (gaṇmeští) ص. ښځ.ج. گڼ استوگني ، پرنفوسي ، تراکم نفوس.

**گڼنی** (gaṇanáy) نر.م. زیلانځ ، زیلان ، رحم.

**گڼوالی** (gaṇwā́lay) ص.نر.م. گڼتیا.

**گڼ وگړی** (gáṇwagə́ray) ص.نر.م. گڼ وگړنی ، پرنفوس ، گڼ مېشتی.

**گڼول**(۱) (gaṇawə́l) مص. مت. په خبرو راوستل ، گړول ، پوښتل.

**گڼول**(۲) (gaṇawə́l) مص.مت. ۱) گورول؛ ۲) ډېرول زیاتول.

**گڼ ولسي** (gaṇwuləsí) ص.ښځ.ج. گڼ ملیتي څو ملیتي ، چند ملیتي.

**ګڼون** (gaṇū́n) نر.م. شمېرل، شمارل، ګڼول.

**ګڼونه** (gaṇawə́na) ښځ.م. ۱) ډېرول، ګڼ ګورول؛ ۲) ګڼونه، په خبرو راوستنه.

**ګڼونی** (gaṇū́nay) فاعل.م. شمېرونکی، محاسب.

**ګڼه** (gáṇa) ښځ.م. ۱) شماره، نمبر، شمېره، د اخبار یارسالې یا بل شي لمبر، جلد؛ ۲) لکه چې.

**ګڼهار** (gaṇahā́r) نر.م. غونهار، ګنهاری.

**ګڼه بوز** (gaṇaṭ ū́z) نر.م. زړور، مضبوط او تکړه، په خبرو اترو کې تکړه او جزار.

**ګڼه خور** (gaṇaxwár) نر.م. هغه څرځای یا ورشو چې وابنه ډېر ولري.

**ګڼه ګونه** (gaṇagū́ṇa) ښځ.م. د خلکو زیاتوالی، کثرت، یا د خلکو ازدحام.

**ګڼه وهل** (gaṇawahə́l) مص.مت. شماره وهل، نومره وهل، نمره زدن.

**ګڼ هېوادیز** (gaṇhewādíz) نر.م. ګڼ هېوادي، څو هېوادي، چند کشوري.

**ګڼی** (gaṇáy) نر.م. غوټی، په پوزه کې خبرې کوونکی.

**ګڼېدل**(۱) (gaṇedə́l) مص.ل. ډېرېدل، زیاتېدل.

**ګڼېدل**(۲) (gaṇedə́l) مص.ل. په پوزه کې خبرې کول، ګڼ ګڼ کول.

**ګڼېښ** (gaṇéṣ) ص.نر.م. کمزوری او ضعیف سری، مانده سری.

**ګڼیه** (gaṇyá) ښځ.م. ګانه، ګرو.

**ګڼیه وال** (gaṇyawā́l) نر.م. ګروي دار.

**ګو** (go) نر.م. ږو، سوګند، د ګواه مخفف، خدایږو.

**ګواتل** (gwātə́l) مص.مت. تېپي کول، ژوبلول.

**ګواټه** (gawāṭá) ښځ.م. ډېرۍ، ډېری، د خپیاکو ډېری، ګوهاټه.

**ګواټی** (gowāṭáy) نر.م. بوم، ګونګ، یوه مرغه دی چې د شپې له خوا واړه مرغان ښکار کوي.

**ګواخ** (gwā́x) نر.م. ۱) مرسته، ارخ، مدد، پره؛ ۲) پخلا کونه.

**ګواخل** (gwāxə́l) مص.مت. ۱) پخلا کول؛ ۲) مرسته کول، مدد کول.

**ګوار**(۱) (gwā́r) نر.م. ۱) پاده، ګله، کوهار؛ ۲) د مزاج مطابق؛ ۳) مج. خوندور؛ ۴) بخیل؛ ۵) بدشکل؛ ۶) پوچ، ګنده؛ ۷) یو ډول مالګه ده چې ښاروېو ته ورکول کېږي؛ ۸) سور، ګورا، پیرنګی؛ ۹) ډول، قسم.

**ګوار**(۲) (gowā́r) ص.نر.م. ساده باده، بوله، جټ، بې تعلیمه، جاهل، شوده بوده.

**ګوارچي** (gawārčí) ص.نر.م. پاده وان، ګله بان، غوبه، ګواري، شپونکی.

**ګوارۍ** (gawārə́y) ښځ.م. بوري، د مزرو ځولۍ چې د خاورو چلولو لپاره کارېږي.

**ګواښ** (gwāṣ) نر.م. ۱) د جنګ نه جلا کونه؛ ۲) ثالثي، منصفي، منځګړتوب؛ ۳) درکه، دارونه، تهدید؛ ۴) جګړې ته راولاړېدنه.

**ګواښکېښ** (gwāṣkéṣ) نر.م. جنګ و سوله، ژغورل، خلاصول، منځګړتوب.

**ګواښ ګر** (gwāṣgár) نر.م. و.ګ. ګواښ ګرندی.

**ګواښ ګرندی** (gwāṣgrə́nday) ص.نر.م. درېمګړی، منځګړی، ګواښ ګر، ګواښ ګری.

**ګواښل** (gwāṣə́l) مص.مت. ۱) ژغورل، بچ ساتل؛ ۲) جنګ ته تیارول، راپارول.

**ګواښلیک** (gwāṣlík) نر.م. اخطارلیک، اخطاریه.

**ګواښندوی** (gwāṣandúy) نر.م. و.ګ. ګواښ ګرندی.

**ګواښنه** (gwāṣána) ښځ.م (ج. ګواښنې) ګواښول، ګوتڅنډنه، اخطار.

**ګواښېدل** (gwaṣedə́l) مص.ل. ۱) تهدید کول، غورېدل؛ ۲) آماده کېدل، جنګ ته تیارېدل.

**گواکې** (gwā́ké) اد. لکه چې، گويا، دا چې، گنې.

**گوال** (gwā́l) نر.م. د غره يا غونډۍ د لمنې ځمکه چې هوړنده وي.

**گوالل** (gwā́lə́l) مص. مت. شهادت ورکول، گواهي ورکول، گواهي لودل.

**گوانجه** (gawā́njá) ښځ.م. منداوو، غابنور، کبر.

**گواه** (gawā́h) ص. نر.م. شاهد، گواهي ورکوونکی، ثبوت ورکوونکی.

**گواهل** (gawā́hə́l) مص. مت. گوالل.

**گواهي** (gawā́hí) ښځ.م. شهادت ورکونه، شاهدي.

**گواهي لل** (gwā́hilə́l) مص. مت. شهادت ادا کول، گواهي ورکول.

**گوبا** (gobā́) ص. ښځ.م. کم عقله، غټه او چاغه ښځه، احمقه يا نادانه ښځه.

**گوبری** (gubaráy) ص.نر.م. له ختې يا خاورې يا چونې او خاورې نه جوړ.

**گوبلکه** (gubaláka) ښځ.م. ۱) يو ډول مرخېړی؛ ۲) پوکانی.

**گوبه** (gubá) ښځ.م. کرکوره، يوه مرغۍ ده.

**گوبيړ** (gubī́ṛ) ص. نر.م. گوبار، بوډا، ډېر زوړ سړی، شيخ فاني.

**گوپ** (gūp) نر.م. ۱) د غويي يا اوښ کوپان؛ ۲) گوجر؛ ۲) د سرو زرو زنځير؛ ۳) د سهيل ستوري، د مني ستوري.

**گوپال** (gupā́l) نر.م. يو ډول گل دی.

**گوپالا** (gupālā́) ص. نر.م. تيارخور، وريا غټې غټې مړۍ اخيستونکی.

**گوپان** (gopā́n) نر.م. د گوپ ستوري، د سهيل ستوري، د مني ستوري.

**گوپر** (gupár) نر.م. و.گ. گوار.

**گوپژن** (gupžán) نر.م. تبديلي، تغيير، بدلون.

**گوپړی** (gupṛáy) نر.م. د گوډي، ژي يا مشک د څرمنې پيوند.

**گوپله** (guplá) ښځ.م. ۱) مړی، نونۍ، نواله؛ ۲) وړيم، د خولې خوسا بوی.

**گوپی** (gupáy) نر.م. و.گ. گلپی.

**گوت** (gut) نر.م. گوتمی، گوته، گوتمه، ځلی، يو ډول ښځينه گاڼه چې ښځې يې په گوته کوي.

**گوتار** (gūtár) ص.نر.م. کوتار، نښتی، اخته، ککړ، لړلی، بوخت، مبتلا.

**گوتاوه** (gutāwá) ښځ.م. بوتاوه، ځاربوته د شوتلو اوبوسو دروشته.

**گوتڅنډنه** (gwatčanḍána) ښځ.م. گواښ، گواښنه، توربربښ، غابښ چيچې.

**گوتخند** (gwatxána) نر.م. د سپښتې يو ډول لوبه ده.

**گوتره** (gutrá) ښځ.م. يو بوټی دی چې په اوبو کې شين کېږي او لوی ډنډر کوي.

**گوتری** (gutráy) ښځ.م. گوترې، پتاق، تباره، کاسه، د مچوغنې يا ليندې کاسه.

**گوتکې** (gwatkáy) ښځ.م. گوته، گوتې.

**گوت گوت** (gwátgwát) نر.م. پېچ پېچ، يو ډول لوبه ده چې د منځنۍ گوتې په ښکاره کولو ترسره کېږي.

**گوتگوتی** (gwatgūtáy) ص.نر.م. بدنام، سپک شوی، شاغو شوی.

**گوتلکه** (gwatláka) ښځ.م. و.گ. گتلکه.

**گوتلکی** (gwatlákay) نر.م. رسوا، د ژبو په سر، په خولو کې، انگشت نما.

**گوتگی** (gwatkáy) نر.م. خچه گوته، ووړکې گوته.

**گوتمنډی** (gwatmanḍáy) نر.م. ۱) گوتم ورکونه؛ ۲) عيب لټونه، اعتراض، الزام.

**گوتمو** (gwatmū́) ښځ.م. ۱) گوتمیر، گوتماغو، د گنډلو یوه آله ده چې ښځې یې په گوته کوي؛ ۲) د تنې سوري، کاج.

**گوتمه** (gwatmá) ښځ.م (ج. گوتمې) و گ. گوتمۍ.

**گوتمۍ** (gwatmáy) ښځ.م.ج. گوته، گوتمه، یوه گانه ده چې په گوته کې اچول کېږي.

**گوتنیونه** (gwatniwə́na) ښځ.م. گوتنیوی، غندنه، نیوکه، تنقید.

**گوتنیوی** (gwatniwáy) نر.م. و گ. گوتنیونه.

**گوتوري** (gwatūŕi) نر.ج. دستاني، لاس پېلې، گوتمې، هغه دستاني چې د باز یا د باښې په لاس کښېولو پر وخت په لاس کېږي.

**گوتول** (gwatawə́l) مص. مت. ۱) گوتې ورکول؛ ۲) عیب لټول، اعتراض کول؛ ۳) الزام لگول.

**گوته** (gwáta) ښځ.م ۱) د لاس یا پښو گوته؛ ۲) یوه پښتني گانه چې په گوته کېږي؛ ۳) یوه لوبه ده.

**گوته په خوله** (gwtápaxulá) ص. ښځ.م. گوته په غاښ، حیران دریان، حق حیران.

**گوت لکه** (gwatláka) ښځ.م. ۱) شوره، گلکه، هغه جنې چې په بدو کې ورکول کېږي؛ ۲) په نښه کول.

**گوتی** (gū́tay) نر.م.ج. د ښکاري ټوپک د دارو وزن او اندازه.

**گوټ**[1] (gwaṭ) نر.م. کونج، زاویه، گوښه.

**گوټ**[2] (guṭ) نر.م. ۱) غړپ؛ ۲) د کوژدې یو رسم چې د جنۍ ورکولو اقرار په کې کېږي او د هلک خپلوانو ته شربت ورکول کېږي؛ ۳) د جولاگانو یوه آله؛ ۲) د سطرنج دانه؛ ۳) غبي او تنبل.

**گوټ**[3] (goṭ) ص.نر.م. (مونثه بڼه یې گوټه) پخ ذهنه، تنبل، کم استعداده، چې سبق یې زر نه زده کېږي.

**گوټ پېر** (gwaṭpér) نر.م. گوټ پېرې، د لارې کوږوالی یا کږلېچ.

**گوټ پېره** (gwaṭpéra) ښځ.م. تاو راتاو، گوټ پېچومې.

**گوټخونه** (gwaṭxū́na) ښځ.م. کوټنۍ، کوټگۍ، پسخانه.

**گوټ غاری** (gwaṭğāráy) ص. نر.م. گوټ ناستی، هغه څوک چې له خلکو نه گوښه ناست وي.

**گوټک** (guṭák) نر.م. ۱) د جرثقیل او نورو څرخ؛ ۲) و گ. گوټکه[1].

**گوټکه**[1] (guṭka) ښځ.م. د تار گوټ یا کلوله.

**گوټکه**[2] (gwaṭáka) ښځ.م. سپما، پس انداز.

**گوټ گورت** (gwaṭgurát) نر.م. د کوژدې یو رسم دی چې هلک ته په کې نکریزې پورې کېږي.

**گوټل** (guṭə́l) مص.مت. غړپ کول، په گوټ گوټ څښل.

**گوټله** (guṭlá) ښځ.م. ۱) د ټوپک گوټله، د ناوه یې ټوپک لټ یا گېټ؛ ۲) د تار گوټ یا کلوله.

**گوټلۍ** (guṭláy) ښځ.م. د کوچنیانو لته یې چوشک چې غوړي، شریني او ... پکې ورکول کېږي.

**گوټ مېچ** (gwaṭméč) نر.م. د گوټ (زاویې) د مېچ آله، زاویه سنج.

**گوټ ناسته** (gwaṭnásta) ص. ښځ.م. گوښه ناستی، اعتکاف، گوښه گیري.

**گوټناستی** (gwaṭnástay) ص.نر.م. گوټناست، گوښه یي، گوشه نشین.

**گوټن** (gwaṭán) نر.م. گوټین، گوټیز، زاویه لرونکی، گوشه دار.

**گوټ والی** (goṭwálay) نر.م. نالایق توب، پخ ذهني، تنبلي، کم استعدادي.

**گوټول** (guṭawə́l) مص. مت. غبي کول، نالایقه کول، پخ ذهنه کول.

**ګوټه** (guṭá) ښځ.م. ۱) د سطرنج دانه؛ ۲) یادونه، حفظ کونه.

**ګوټه ګن** (guṭagán) نر.م. دوبندی، په سر ک یا دره کې د ننوتو لاره.

**ګوټي** (guṭí) ښځ.م. ګوټلی، یو تریخ بوټی دی چې په یوناني درملنه کې هم کارېږي.

**ګوټی** (gwaṭáy) نر.م. ګونیا، کچه، یوه آله ده چې معماران وربانديې د میزان کارونه برابروي.

**ګوټۍ** (guṭə́y) ښځ.م.ج. د سطرنج تخته.

**ګوټېدل** (goṭedə́l) مص. ل. غبي کېدل.

**ګوټین** (gwaṭín) ص. نر.م. ګوټ لرونکی، زاویه لرونکی.

**ګوجر** (gujár) نر.م ۱) یوه طایفه چې د غوا - مېښو ساتلو او پیو خرخولو کار وبار کوي؛ ۲) د یو قوم نوم دی، ژبه یې ګوجرو یا ګجراتي بلل کېږي.

**ګوجرکی** (gugarkáy) نر.م. د ملا د تیر مهره.

**ګوجرو** (gujró) ښځ.م. د ګوجر قوم ژبه، ګجراتي ژبه.

**ګوجک** (guják) نر.م. پتیره، د خمیره ضد.

**ګوجکه** (gujáka) ښځ.م. یو ډول سوررنګی وره حشره ده، د غره پیشی، حلزون.

**ګوجی** (gūjáy) نر.م. ۱) ګوډړ، شاپېتی، صدف، یو بحري لعاب داره حیوان؛ ۲) د سترګې ګل؛ ۳) کونجکه، خرمهره؛ ۴) خول، پوستکی.

**ګوجي** (gují) نر.ج. هغه پې چې شلومبې په کې واچول شي او سېمدلاسه ماسته جوړ کړی شي.

**ګوچی** (gučáy) ښځ.م.ج. لپانکی، سمتی، اد ک، یو ډول لوبه ده، لشپاک بازي.

**ګوځ مُوځی** (gujmūjáy) نر.م. ګځموزی، ګونس، غلی، هغه څوک چې ډېرې خبرې نه کوي.

**ګوځڼ** (guǰáṇ) نر.م. ګوزاڼ، ګوزڼ، فالج، د بدن د ړچېدو مرض.

**ګوڅری** (gucráy) نر.م. پنه، ګاولی، کبی، کوڅره، موچنه.

**ګودا** (gudā́) ښځ.م. ګوده، زړی، زنی، مغز، د مېوې یا تخم منځ برخه.

**ګوداړه** (gudāṛá) ښځ.م. ګوسره، په ورمېږ وهنه.

**ګودام** (gudā́m) نر.م. ګدام، ډېپو، زېرمه تون، د غلو دانو او نورو شیانو د زېرمه کولو ځای.

**ګودان** (gudā́n) نر.م. چرچوبی، چارچوبی.

**ګودانه** (gudā́na) ښځ.م. ناوه، پرناله.

**ګودر** (gudár) نر.م. (ج. ګودرونه، ګودرې) ۱) له سیند نه د پورې وتو لاره؛ ۲) د سیند، چینې، کارېز یا څاه هغه ځای چې ښځې ترې اوبه راوړي؛ ۳) لاره، ړو.

**ګودره** (gudára) ښځ.م. لاړی، برګه، ډاګه، دستک.

**ګوډړ** (gudáṛ) نر.م. ۱) تیوکی، رخت، زړه توټه؛ ۲) ص. نر.م. زوړ او بوډا خاروی؛ ۳) زوړ او بېکاره؛ ۴) نر.م. صدف، سیپی؛ ۵) د کاغذ یا تیوکر توټه، خرڅوری، زړه لته، لیتاړه.

**ګوډړوالا** (gudaṛwālā́) فا. نر.م. کباړي، زوړ پلوری، کهنه فروش.

**ګوډړه** (gudáṛa) ښځ.م. ګاډړه، زړه او ډنګره ښځه.

**ګوډړۍ** (gudaṛə́y) ص. ښځ.م.ج. کند، د ملنګانو ګنځ، زوړ او پیوندي څادر.

**ګوډړی ګوډړی** (gudṛáygudṛáy) ص. نر.م. زړې زړې، توټې توټې، میده میده.

**ګوده**[1] (gudá) ښځ.م. ۱) د مال د تړلو کوټه؛ ۲) هغه کوټه چې د اوسېدو وړ نه وي، ګاوخونه.

**ګوده**[2] (gwáda) ص. نر.م. ګوډ.

**ګوډ** (guḍ) نر.م. ۱) اللون، خښتاوه، ګوړ؛ ۲) د تار ګوټ، د تار غوټه؛ ۳) د نهر یا ویالې د اوبو د خېژولو لپاره د لرګیو او خاشاکو تړل شوی بند.

**گوډا** (۱) (gwaḍā́) ص. نر.م. گوډ، په پښه معیوب، لنګ.

**گوډا** (۲) (guḍā́) نر.م. ۱) گوډۍ، پتنګ، بادیوه؛ ۲) نانځکه، گوډۍ، ناوکۍ؛ ۳) هغه سړی چې د بل په اشاره کار کوي.

**گوډاگی** (guḍāgáy) نر.م. ۱) نانځکه، ناوکۍ؛ ۲) ص. لاس پوڅی، د بل لاس آله.

**گوډانه** (guḍānā́) ښځ.م. ۱) گوډۍ؛ ۲) جبب، د تخرگ جبب؛ ۳) یو ډول کڅوړه ده چې د ننه په خیمو کې یې گنډي؛ ٤) لسوډچکی، وړوکې بوجۍ؛ ۵) د مېوو تولولو څادر.

**گوډبانی** (guḍbā́nay) نر.م. پېټواری، هغه نوکر چې د سفر یا ښکار په وخت کې چا سره وي او د هغه د مال و اسباب ساتنه کوي.

**گوډبه** (guḍbá) نر.م. هغه کاریز کنستونکی چې د کاریز پر کوهي باندې کار کوي.

**گوډچکی** (guḍčákay) نر.م. گوډانه، گوډکی، گوډچکه، وړوکی انبان.

**گوډری** (guḍáray) نر.م. د گوډي یا غړکې پښه.

**گوډکی** (gūḍakáy) نر.م. وړوکی گوډۍ، کوچنۍ ژۍ.

**گوډل** (guḍál) نر.م. غوجل، د څارویو د تړلو ځای.

**گوډلاسی** (gwaḍlā́say) نر.م. معذوره، یو لاسی.

**گوډمار** (guḍmā́r) فا نر.م. گوړ کوونکی، گوډیمار، للون والا.

**گوډوالی** (gwaḍwā́lay) نر.م. گوډتوب.

**گوډول** (guḍawál) مص. مت. د کروندې ځمکه په رمبي یا تېسکورې نرمول، فصل صفا کول.

**گوډوی** (gwaḍwáy) نر.م. گډوې، گډوه، د شرابو لوښی.

**گوډه** (guḍá) ښځ.م. ۱) گونته، په ادب کښناستنه؛ ۲) ځیر کېدنه، متوجه کېدنه.

**گوډه بلی** (guḍabálay) نر.م. موش پرانګ، نولی، خر پانډۍ، خرپاندۍ.

**گوډی** (۱) (gū́ḍay) نر.م. ۱) هغه څرمنې شی چې دانې، غوړي او نور پکې اچوي؛ ۲) د غړکې لاستی؛ ۳) د جوارو شپټی.

**گوډی** (۲) (gwaḍáy) ص.نر.م. ۱) گوډ، په یوه پښه گوډه؛ ۲) د څارویو یوه ناروغي؛ ۳) د جوارو بوټي یو ډول چینجی؛ ٤) د بوسو خوسی، ډډ.

**گوډی** (۳) (góḍay) نر.م. د للون، خښتاوې یا گوړو کوچنی لور.

**گوډي** (goḍí) ښځ.م. گوډیګر، خښتاوه کوونکی.

**گوډ یاري** (gūḍyārí) نر.ج. د غړکې څلور لاستي چې پرهغو سره په خرک کې ځوړندېږي.

**گوډیاری** (goḍyāráy) ښځ.م. چاګله، د اوبو ورکوټې ژی، مشکوله.

**گوډیال** (guḍyā́l) نر.م. د بوټو ایستلو تېسکوره.

**گوډی چرگ** (gwaḍayčárg) نر.م. ملاچرګک، هُدهُد.

**گوډی خادمی** (guḍayxādámay) ښځ.م. یو ډول سمسباره، دسمساري په څېر یوه خزنده.

**گوډ یکه** (gūḍyáka) ښځ.م. ۱) وړوکی گوډۍ؛ ۲) ډانگوره، د گوډو شلو ډانگوری؛ ۳) د تار رېشلو د څرخي پایه.

**گوډېدل** (gwaḍedál) مص. ل. گوډ کېدل، په پښه معیوبېدل.

**گوډیکه** (۱) (gwaḍyáka) ښځ.م. د گوډانو د تخرگ لرگی.

**گوډیکه** (۲) (gūḍiká) ښځ.م. ۱) وړوکې ناوه کی؛ ۲) د سپنسیو د تاوولو پایه.

**گوډیه** (gūḍyá) ښځ.م. د تروړاشړومبو د غړکې د لاستي د تړلو تسمه.

**گور**[1] (gūr) نر.م. ۱) گڼ، ډ ک او خپورور، ډ ب ډوب؛ ۲) گورم، پاده.

**گور**[2] (gor) نر.م. ۱) مړیستون، قبر، مزار؛ ۲) اور لمانځونکی، گبر؛ ۳) ص.نر.م. برابر، سیال، ثاني، جوړه، ساری.

**گوراځه** (goráca) نر.م. گډړی، کند، گنځ، گوراځه، هغه لباس چې ډېر پیوندونه ولري.

**گوراډی** (gurāḍáy) ښځ.م. ناولې، بدشکله، پوواړه، پوهاړه.

**گوراری** (gurāráy) نر.م. غرغر کونه، گوربدنه، قهر، غوسه.

**گوراگور** (gorāgór) ص.نر.م. تېز، تونډ، چټک.

**گوربت** (gorbát) نر.م. (ج. گوربتان) عقاب، شاهین.

**گوربتگوټی** (gorbatgóṭay) ص.نر.م. د گوربت بچی، د عقاب بچی.

**گوربتوزمه** (gorbatwázma) ص. نر.م. د گوربت غوندې، د گوربت په څېر.

**گوربته** (gorbatá) ښځ.م. عقابه، شاهینه.

**گوربند** (gorbánd) نر.م. د اوبښ یا غوایي پېش بند.

**گورت** (gwrát) نر.م. ۱) د گوتو ترمنځ فاصله؛ ۲) د مسواکي او گتې گوتې ترمنځ واټن.

**گورتوب**[1] (gurtób) نر.م. گوروالی، گڼ توب، گڼوالی، گورتیا.

**گورتوب**[2] (gortób) نر.م. مقابله، همسري، مساوي توب، گورتیا.

**گورتی** (gwaratáy) نر.م. هغه شی چې د شهادت او غټې گوتې ترمنځ ځای نیسي.

**گورټی** (gurṭáy) نر.م. گوتمه، گوتمی، گرټی.

**گورجه** (gūrjá) ښځ.م. سره آلوچه.

**گورجی** (gūrjáy) ښځ.م.ج. یو ډول پښواني ښځینه پڼې.

**گورجی سپی** (gūjay spáy) ص. نر.م. یو ډول ښکاري سپی.

**گورڅه** (gūrcá) ښځ.م. (ج. گورڅې) باړخو، غمبوری، اننگی، غومبوری، بغون، لغون.

**گورخر** (goraxár) نر.م. گوراخر، گورزی، غیره، غیړه، یو ځنگلي خر چې غوښه یې حلاله ده.

**گورزی** (gorzáy) نر.م. ۱) هغه کوچنی چې په قبرکې له مړي موره پیدا شي؛ ۲) گورخر.

**گورستان** (goristān) نر.م. قبرستان، هدیره، مقبره، د مړو ښخولو ځای.

**گورسنگ** (gawarsáng) نر.م. یو ډول توره کلکه تیږه ده چې د ژرندې میل وربانډې څرخي.

**گورک** (gorák) نر.م. گوارچي، گواره ساتونکی.

**گورکښ** (gorkáṣ) نر.م. قبرکنستونکی، قبرکن.

**گورکښه** (gorkáṣa) ښځ.م. گورگټی، بغسه، غسه، یو حیوان دی چې مړي له قبر نه وباسي.

**گورکن** (gorkán) ص. نر.م. و گ. گورکښ.

**گورگابی** (gūrgábay) نر.م. یو ډول ژور بوټ.

**گورگټی** (gorgaṭáy) ښځ.م. و گ. گورکښه.

**گورگرندی** (gorgránday) نر.م. قبرکن، هغه څوک چې قبر کنستل یې کسب وي.

**گورگور** (gúrgur) نر.م. غرغر، گوربدنه، گرومبدهٔ، له قهر نه گوربدنه یا غربدنه.

**گور گوره** (gwargūra) ښځ.م. یوه غرنۍ اغزنه ونه ده چې توري وړې خوږې دانې لري.

**گورلټی** (gorlaṭáy) ښځ.م.ج. گورکښ، غسی، هغه حیوان چې گور لټوي او مړي ترې راباسي.

**گورلځ** (gūrlác) ص. نر.م. تندرست، چاغ، سور و سپین، غټ پټ.

گورم (gūrám) نر.م. ۱) پاده، گله؛ ۲) السویه ډله، لوی جمعیت.
گورمټ (gūrmáṭ) نر.م. گرمټ، سوک، موک، گورموټ.
گورمکی (gūrmakáy) ښځ.م.ج. یو ډول چرګه، پستکې چرګه.
گورمل (gūrmál) مص.مت. ۱) سرسري او گونځې گونځې گنډل؛ ۲) ص.نر.م. غوسه ناک، برچن، بروس، غورځنګ کوونکی.
گورملتوب (gūrmaltób) نر.م. بروس والی، کاږساوی، گروت والی، خپگان، غوسه، قهر.
گورموځ (gurmúǰ) ص.نر.م. غصه ناک، قهرجن.
گورموز (gurmúz) ص.نر.م. و.گ. گورموځ.
گورنده (gūránda) ښځ.م. کوندغال، کندغالي، کنده، ډوغل.
گورنډ (goránḍ) نر.م. تنګ تروش، تیاره کور، زوړ ژور قبر.
گورنډه (gūránḍa) ښځ.م. ۱) وړوکی او تنګ کور؛ ۲) زوړ قبر؛ ۳) غوجله.
گورنر (gawarnár) ص.نر.م. ۱) د یوې صوبې حاکم؛ ۲) ماشین ته د گیس رسولو پرزه.
گورنگی (gūrangáy) ص.نر.م. سور رنګ لرونکی آس.
گورو (gurū́) نر.م. ۱) پیر، مرشد؛ ۲) د علم وفن استاذ؛ ۳) مج. شریر، مفسد؛ ٤) هوښیار.
گوروالی (gūrwā́lay) نر.م. د گوارې ساتلو کار، گله وان، پاده واني، گاهوتوب، شپون توب.
گوروان (gūrwā́n) ص.نر.م. پاده وان، گله وان.
گوروانکه (gūrwānáka) ښځ.م. شامتوره.
گورول (gūrawə́l) مص.مت. ۱) گڼ او گور کول؛ ۲) قهر ورته کول، په غوسه او غضب ورته خبرې کول.
گوره (gū́ra) ښځ.م. ۱) هغه لوی سوری یا ډوغل چې د سیند د لارې په غاره ځمکه کې شوی وي؛ ۲) نر.م. تجارتي نخښه؛ ۳) ښځ.م. سپنځې، سپنخول، د اوسپنې بوره.
گورهار (gurhā́r) نر.م. ۱) د زلزلې آواز؛ ۲) په پرله پسې توګه غرویش کول.
گوره گل (guragə́l) نر.م. غوره گل، وچه لنده خټه.
گورهند (gūrhánd) نر.م. گورنډه، گورهنډه.
گورهنډه (gūrhánḍa) ښځ.م. تنګ و تیاره غار، ډوغل، گورنډه، لویه کنده؛ ۲) مج. قبر.
گوریېز (gurayíz) نر.م. یو ډول گلبتي توپک.
گوري (gurí) ښځ.م. تکې برګې، په لوبو کې دوکه.
گورۍ (gawráy) ښځ.م.ج. گور، دلده، ورغستلی، ارغستي، ارغستلي.
گوری (gūráy) نر.م. گوره، د اوسپنې میده گي، وسپنخرې.
گوریجن (gūrejә́n) فا.نر.م. دوکه باز، چلي.
گورېدل (gūredə́l) مص.ل. ۱) گڼ کېدل، گورېدنه؛ ۲) گنېدل، ځان سره گڼ گڼ کول، غرېدل.
گوري سمسه (gūrisamsá) ښځ.م. ۱) کوېل، د یو مارغه نوم؛ ۲) تورانی، تارانکه، کویله.
گوریله (gūrilá) ښځ.م. گوریلا؛ ۹) گوریلایي، چریکي پوځ؛ ۲) دښادو یو ډول.
گوریمار (gūrimā́r) نر.م. دوکه باز، چلباز.
گوری موری (gū́raymū́ray) نر.م. ناڅاپه، نابېره، ناگهان، سمدلاسه.
گوړ (gū́ṛ) نر.م. ۱) و.گ. گوره[1]؛ ۲) و.گ. گوډ[1].
گوړ (goṛ) نر.م. په گېډه کې د باد آواز.
گوړا (guṛā́) ښځ.م. ۱) یوه خره ونه ده؛ ۲) یو ډول ماله ده چې پټي پرې اواروي.

